

# ملي سرود

دا وطن افغانستان دی
دا عزت د هر افغان دی
کور د سولې کور د تورې
هر بچی یې قهرمان دی
دا وطن د ټولو کور دی
د بلوڅو د ازبکو
د پښتون او هزاره وو
د ترکمنو د تاجکو
ورسره عرب، گوجر دي
پامیریان، نورستانیان
براهوي دي، قزلباش دي
هم ایماق، هم پشه یان
دا هېواد به تل ځلېږي
لکه لمر پر شنه آسمان
په سینه کې د آسیا به
لکه زړه وي جاویدان
نوم د حق مو دی رهبر
وایو الله اکبر وایو الله اکبر

# د کتاب ځانګړتیاوې

---

**مضمون:** د رسامی هنر

**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د هنر برخې د درسي کتابونو مؤلفین

**اډیټ کوونکي:** د پښتو ژبې د اډیټ دیپارتمنت غړي

**ټولګی:** شپږم

**د متن ژبه:** پښتو

**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۷ هجري شمسي

**د چاپ ځای:** کابل

**چاپخونه:** بهیر مطبعه

**برېښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af

---





## د پوهنې د وزیر پیغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته یې ژوند رابښلی، او د لوست او لیک له نعمت څخه یې برخمن کړي یو، او د الله تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پیغام ورته (لوستل) و، درود وایو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونیز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراګانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږګوني بنسټیز عناصر بلل کیږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور بنسټیزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تأسیساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې د هېواد بچیانو ته دې د درسي کتابونو په تدریس، او د محتوا په لېږدولو کې، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځیرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې یې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپېڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بریا غواړم.

د معیاري او پرمختللي ښوونیز نظام او د داسې ودان افغانستان په هیله چې وګړي یې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزیر

دکتور محمد میرویس بلخي



# فهـــــرست

لوست ۱

# د منې او ناک رسمول

**موخه**: پر پنسل د رسمولو له طریقې سره د زده کوونکو بلدتیا، د خارجي او داخلي خطونو په پام کې نیولو سره د منې او ناک رسمول.

**پوښتنې**: • منه او ناک کوم رنګونه لري؟
• په لاندې انځور کې څه شی وینئ؟



دویم انځور



**فعالیت:** زده کوونکي دې لومړی پوښتنو ته ځوابونه ووايي او بیا دې داخلي او خارجي خطونه په پام کې ونيسي، له خفيف څخه د تیاره په لور دې خپل کار ته دوام ورکړي او بیا دې په ساده پردازونو بشپړ کړي.



لومړی انځور

## کورنی دنده



زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې منه او ناک په پنسل رسم کړي.




لوست ۲

# د مڼې او ناک رنګول

**موخه**

د مڼې او نــاک له رنــګــولو سره د زده کوونکو بلدتیا.

**پوښتنې:** د مڼې او ناک په رنګولو کې له کومو رنګونو څخه کار اخیستل کیږي؟



دویم انځور



**فعالیت**

زده کوونکي دې د کاغذ پر مخ منه او ناک له لاندې شکل سره سم رسم کړي او بیا دې رنګ کړي.



لومړی انځور

## کورنۍ دنده



په کور کې د منې او ناک رنګول بشپړ کړئ.

# لوست ۳

# د لاسي کار جوړول

**موخه**: له سیمه ییزو موادو څخه د منې او ناک د لاسي کار له جوړولو سره د زده کوونکو بلدتیا.

**پوښتنې**: • د لاسي کار د جوړولو لپاره کومو موادو ته اړتیا ده؟
• څه ډول لاسي کار مو خوښیږي؟



دریم انځور



**فعالیت**

زده کوونکي دې لاندې انځور ته په پاملرنې په خپله خوښه په کور او ټولګي کې لاسي کارونه جوړ کړي.



لومړی انځور



دویم انځور

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې له ساده سیمه ییزو توکو، لکه ګل، کاغذ او نورو څخه لاسي کارونه جوړ او ټولګي ته دې راوړي.




# څلورم لوست

## د سبو رسمول

**موخه**

دسبو رسمولو له طریقې سره د زده کوونکو بلدتیا.

**پوښتنې:** • د خطونو په واسطه د سبو رسمولو او د هغو د کارونې د لارو چارو په اړوند څه ویلای شئ؟

• آیا تاسې پوهیږئ چې په لاندې انځور کې څو ډوله سابه شته؟



دویم انځور



**فعالیت**

زده کوونکی دې لومړی ساېه د خطونو په واسطه پر پنسل رسم، وروسته دې بشپړ او خپل کارونه دې د ننداري لپاره ټولگیوالو ته وړاندې کړي.



لومړی انځور

## کورنۍ دنده



ساېه د کتاب له مخې په کتابچو کې پر پنسل رسم کړئ.



## ۵ لوست

# د سبو رنګول

**موخه**

د سبو له رسمولو او رنګولو سره د زده کوونکو بلدتیا.

**پوښتنه:** کله مو سابه رسم او رنګ کړي دي؟



دویم انځور



**فعالیت:** لاندې شکل له خپلې خوښې سره ترتیب او سکیچ کړئ، هڅه دې وشي چې رنګونه په مناسبو ځایونو کې وکارول شي، د ضرورت پر وخت له ښوونکي څخه مرسته وغواړئ.



لومړی انځور

## کورنۍ دنده



زده کوونکي دې له خپلې خوښې سره سابه رسم او رنګه کړي.




لوست ٦

# د ونې رنګول

**موخه**

زده کوونکي به د ونې په رسمولو او رنګولو و پوهیږي.

**پوښتنې:**
- آیا کله مو کومه ونه رسم او رنګ کړې ده؟
- کله مو په طبیعت کې د رنګونو په اړه فکر کړی دی؟



دریم انځور



**فعالیت**

زده کوونکي دې په کتاب کې د رسم د پړاووںو په پام کې نیولو سره یوه ونه پر نریو خطونو رسم، وروسته دې رنګ کړي.




## کورنۍ دنده



زده کوونکي دې له خپلې خوښې سره سم یوه ونه رسم او رنګ کړي.

# ۷ لوست

# د الوتونکو رسمول

**موخه**
د الوتونکو له انځورولو سره د زده کوونکو بلدتیا.

**پوښتنې :** • کله مو الوتونکي له نژدې لیدلي او رسم کړي دي؟
• د الوتونکو په رسمولو کې له کومو وسایلو ګټه اخلئ؟



دریم انځور



**فعالیت**

د الوتونکو انځورونه د درسي کتاب له مخې پړاو په پړاو رسم او په خپله خوښه یې سم پرداز کړئ.



لومړی انځور



دویم انځور

## کورنۍ دنده



یو الوتونکی په خپله کتابچه کې رسم او ټولګي ته یې راوړئ.

## لوست ۸

# د طوطي رنګول

**موخه**: د الوتونکو د رنګونو د ترکیب او د خطونو په واسطه د رسمولو له طریقې سره د زده کوونکو بلدتیا.

**پوښتنې:** • دلاندېنیو انځورونو د رنګونو د ترکیب په اړه معلومات راکولای شئ؟
• د انځورونو له رنګولو څخه څه احساس کوئ؟



دویم انځور



**فعالیت**

زده کوونکي دې لاندېنیو انځورونو ته په ځیر وګوري، بیا دې سکیچ او په نریو خطونو رسم او رنګ کړي.




## کورنۍ دنده



پورتني شکلونه په خپلو کتابچو کې رسم او بیا یې رنګ کړئ.

## لوست ۹

# د افغاني جامو رسمول

**موخه**: د افغانستان له دودونو، کلتور او له افغاني جامو سره د زده کوونکو بلدتیا.

**پوښتنې** : آیا تاسو له افغاني جامو سره بلدتیا لرئ او کله مو رسم کړې دي؟



دویم انځور



**فعالیت**

زده کوونکي دې د ښوونکي د لارښوونو په پام کې نیولو سره په منظم ډول لاندې انځور رسم، بیا دې رنګ کړي.



لومړی انځور

## کورنۍ دنده



زده کوونکي دې د درسي کتاب له انځورونو سره سم افغاني جامې رسم او بیا دې رنګ کړي.



# لوست ۱۰ د آس د پښو د حرکتونو رسمول

**موخه**: له بیلا بیلو زاویو څخه په ډول ډول خطونو د آس د پښو د رسمولو له طریقې سره د زده کوونکو بلدتیا.

**پوښتنې**:
- کله مو د آس پښې رسم کړې دي؟
- په لاندې انځور کې څو پښې لیدل کیږي؟



دریم انځور



**فعالیت:** زده کوونکي دې لاندې انځور او د هغه د پړاووونو په پام کې نیولو سره د آس پښې رسم، بیا دې په نرم پنسل سره پرداز کړي، په ځینو بر خو کې دې له ښوونکي څخه مرسته وغواړي.



لومړی انځور



دویم انځور

## کورنۍ دنده



له خپلې خوښی سره سم د آس پښې په کتابچو کې رسم کړئ.







لوست ۱۱

# د حشرو رسمول

**موخه**: د خطونو په واسطه د حشرو له رسمولو او رنګولو سره د زده کوونکو بلدتیا.

**پوښتنې:** • کله مو حشرې رسم او رنګ کړې دي؟
• په لاندې انځور کې څو ډوله حشرې وینئ؟



دریم انځور



**فعالیت**

د حشرو په اړوند له ښوونکي معلومات حاصل کړئ، له لاندې انځور سره يې سم بشپړ او رنګ کړئ.



لومړی انځور



دويم انځور

## کورنۍ دنده



زده کوونکي دې په خپلو کتابچو کې يوه حشره پر پنسل رسم کړي.



## لوست ۱۲

# د گل رنګول

**موخه**

زده کوونکي به د ډول ډول ګلانو له رنګولو سره بلدتیا پیدا کړي.

**پوښتنې:**
- کوم ډول ګل مو تر اوسه رسم او رنګ کړی دی؟
- په لاندې انځور کې کوم ګل وینئ؟



درېم انځور



**فعالیت**

هر زده کوونکی چې د گل له هر ډول رنگ سره مینه لري، پړاو پر پړاو دې رسم او له خپلې خوښې سره سم دې رنگ کړي.



لومړی انځور



دویم انځور

**کورنۍ دنده**



د کتاب د رسم له مخې یو گل په خپله خوښه په کتابچو کې رسم کړئ او په بله ورځ یې ټولگي ته راوړئ.





لوست ۱۳

# د خیالي منظرو رسمول

**موخه**: د خیالي منظرې له رسمولو سره د زده کوونکو بلدتیا، زده کوونکي به وکولای شي څه يې چې په فکر کې گرځي، هغه د کاغذ پر مخ رسم کړي.

**پوښتنې**:
- آیا د طبیعت د رنگونو په اړوند مو فکر کړی او په اړه يې څه ویلای شئ؟
- کله مو له خپل فکر او تصور څخه کوم شکل رسم او رنگ کړی دی؟



دریم انځور



**فعالیت**

د لیدنو کتنو له مخې په هر څه چې پوهیږئ، د پړاوونو په پام کې نیولو سره لاندې انځور رسم او بیایې رنګ کړئ.



لومړی انځور



دویم انځور

## کورنۍ دنده



د خپلو پخوانیو لیدنو کتنو په اړوند فکر وکړئ او څه چې مو په فکر کې راځي، رسم یې کړئ.





لوست ۱٤

# د کاغذي لاسي کار جوړول

**موخه**: له کاغذ څخه د الوتونکو د لاسي کار په اړوند د زده کوونکو وړتیاوو ته پراختیا ورکول.

**پوښتنې:** • د لاسي کار له جوړېدو څخه وروسته څه احساس درته پیداکیږي؟
• له کومو موادو څخه لاسي کار جوړ یدلای شي؟



نهم انځور



**فعالیت**

زده کوونکي دې له لاندې شکلونو څخه لاسي کار جوړ او د جوړولو پر وخت دې له ښوونکي څخه مرسته وغواړي.

























## کورنۍ دنده



د خپل مور او پلارپه مشوره له کاغذ څخه لاسي کار جوړ کړئ.

لوست ۱۵

# د ونو رسمول

**موخه**

د ساده طبیعي انځورونو له رسمولو سره د زده کوونکو بلدتیا.

**پوښتنې:** • کله مو په طبیعت کې یوه ښکلې ونه رسم کړې ده؟
• په لاندې انځور کې څه وینئ؟



دریم انځور



**فعالیت:** زده کوونکي دې له ټولګي څخه د باندې اړوند فعالیت ترسره کړي، په مرحله یي ډول دې د ونې پر رسمولو سر بیره،د خپلې سیمې یوه ونه رسم کړي.



لومړی انځور



دویم انځور

## کورنۍ دنده



زده کوونکي دې اړوند فعالیت د رنګونو په واسطه بشپړ کړي.





## لوست ۱٦

# دهندسي شکلونو رسمول

**موخه**: زده کوونکي به د هندسي شکلونو له کمپوز (ترکیب)، لریوالي او نژدیوالي سره بلدتیا پیدا کړي.

**پوښتنې**:
- آیا له هندسي شکلونو سره مو مخکې بلدتیا درلوده؟
- ولې هندسي شکلونه رسموو؟


























**فعالیت**: زده کوونکي دې په ډلو کې د لاندې انځورونو د رسمولو پر وخت لریوالي او نژدیوالي ته پاملرنه وکړي. وروسته دې د ښوونکي په مرسته د رسمولو او پرداز لارې چارې زده کړي.










لومړی انځور

## کورنۍ دنده



زده کوونکي دې په فعالیت کې ورکړل شوي انځورونه په ځانګړې پاملرنې سره رسم کړي.





## لوست ۱۷

# د تخنيکي او هندسي شکلونو رسمول

**موخه**: د پنسل په واسطه پر نريو خطونو د هندسي او تخنيکي شکلونو له رسمولو سره د زده کوونکو بلدتيا.

**پوښتنې**:
- کوم هندسي شکلونه مو تر اوسه رسم کړي دي؟
- آيا تاسو کله هندسي او تخنيکي شکلونه رسم کړي دي؟



دريم انځور



**فعالیت**

زده کوونکي دې لاندې شکلونه سکیچ کړي. له ډاډ وروسته کولای شي له خپلې خوښې سره سم یې رنګ کړي.



لومړی انځور



دویم انځور

## کورنۍ دنده



یو هندسي شکل په کور کې رسم کړئ.

## ۱۸ لوست

# د نوښتګرو شکلونو یا انځورونو جوړول

**موخه**: له ساده سیمه ییزو توکو څخه د نوښتګرو شکلونو په اړوند له فکر کولو سره د زده کوونکو بلدتیا.

**پوښتنې:** • کله مو د نوښتګرو انځورونو د جوړولو په باب فکر کړی دی؟
• کولای شئ ووایئ چې نوښت څه ته وایي؟





**فعالیت**

لاندې انځور ته په پاملرنې مو له فکر  کولو وروسته د یو نوښتګر اثر په باب یو له بل سره نظرونه شریک کړي دي؟

لومړی انځور

## کورنۍ دنده



زده کوونکي دې په کور کې په خپله خوښه یو ښکلی انځور وکاږي.

# لوست ۱۹ د پاڼو په واسطه د یوه نوښتګر انځور جوړول

**موخه:** له پاڼو څخه د یوه نوښتګر انځور له جوړولو سره د زده کوونکو بلدتیا.

**پوښتنې:** • آیا تاسې ویلای شئ چې لاندې انځور له څه شي جوړ شوی دی؟
• تر اوسه مو داسې نوښت کړی و؟



دویم انځور



**فعالیت:** لاندې شکلونو ته په پاملرنې سره په خپله خوښه له پاڼو یو نوښتګر اثر جوړ کړئ او د پاڼو په رنګولو کې له مصنوعي رنګ څخه ګټه واخلئ.

لومړی انځور

## کورنۍ دنده



په کور کې له سیمه ییزو توکو څخه د نوښتګرو کارونو د جوړولو په اړوند فکر وکړئ.





## لوست ۲۰ له رنګ څخه د نوښتګر انځور جوړول

**موخه**: زده کوونکي به د کاغذ پر مخ د رنګ پر اچولو او د یوه نوښتګر اثر د جوړولو لپاره د کاغذ پر قات کولو وپوهیږي.

**پوښتنې**: • د یوه اثر د جوړولو په اړوند خپل فکر څرګند کړئ؟
• له نوښتګرو کارونو څخه څه خوند اخلئ؟



دریم انځور



**فعالیت:** لومړی د کاغذ پر مخ یو مایع رنګ واچوئ، وروسته په مساوي ډول کاغذ قات کړئ، هغې ته د لاس د ورغوي په واسطه فشار ورکړئ، بیرته کاغذ خلاص کړئ، کوم نوښتګر انځور چې غواړئ، څرګندیږي.



لومړی انځور

دویم انځور

## کورنۍ دنده



زده کوونکي دې په کورونو کې له خپلې خوښې سره سم پر یوه نوښتګر انځور کار وکړي.

لوست ۲۱

# د پاڼو ټاپه کاري

**موخه**: په ټاپه کارۍ کې له سیمه ییزو توکو څخه له ګټې اخیستنې سره د زده کوونکو بلدتیا.

**پوښتنه:** • د ټاپه کارۍ لپاره له کومو توکو استفاده کوئ؟



اووم انځور



**فعالیت**

زده کوونکي دې د ګل یوه پاڼه واخلي، په هغه دې رنګ ووهي، وروسته دې له لاندې انځور سره سم د کاغذ پر مخ ټاپه کړي.



لومړی انځور



دویم انځور



دریم انځور



څلورم انځور



پنځم انځور

## کورنۍ دنده



زده کوونکي دې په کورونو کې د خپلې کتابچې پُشتۍ ټاپه کاري کړي.

لوست ۲۳

# د ډیزاینونو رسمول

**موخه**

د پنسل په واسطه له ډیزاینولو سره د زده کوونکو بلدتیا.

**پوښتنې:** • په ډیزاین شویو رسمونو کې څه شی وینئ؟

• تاسې په خپله سیمه کې ډیزاین شوي رسمونه لیدلي دي؟



دریم انځور



**فعالیت**

زده کوونکي دې لاندې ډیزاینونه په روښانه خطونو سره جوړ، بیا دې د نرم پنسل په واسطه طرح او ډیزاین کړي.



لومړی انځور



دویم انځور

## کورنۍ دنده



په کور کې په خپله خوښه یو لاسي کار ډیزاین کړئ.

# لوست ۳۳ د لاسي کارونو جوړول

**موخه**: له رنګه مقوا کاغذ څخه د ډیزاین په طرح او د بیاتي په واسطه د هغه په پرې کولو د لاسي کار له جوړولو سره د زده کوونکو بلدتیا.

**پوښتنې:** • کله مو له مقوا رنګه کاغذ څخه د ډیزاین په طرح، لاسي کار جوړ کړی دی؟
• ولې د لاسي کار ډیزاینونه جوړوو؟



دویم انځور



**فعالیت:** زده کوونکي دې لومړی د کاغذ پر مخ ورکړل شوی ډیزاین طرح کړي، وروسته دې هغه د بیاتي په واسطه پرې کړي، بیا دې د سریښنو په واسطه د بل کاغذ پر مخ سریښ کړي.



لومړی انځور

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې په کورونو کې له ساده سیمه ییزو موادو څخه لاسي کار جوړ کړي.

لوست ۲۴

# د نوښتګر شکل جوړول

**موخه**

د نوښتګرو شکلونو له جوړولو سره د زده کوونکو بلدتیا.

**پوښتنې:** • له کومو پاڼو نوښتګر شکلونه جوړوئ؟

• آیا د نوښتګرو شکلونو د جوړولو له لارو چارو سره بلدتیا لرئ؟



دویم انځور



**فعالیت:** زده کوونکي دې د سیمه ییزو پاڼو د شکل په پام کې نیولو سره د وسایلو په واسطه، د ښوونکي له لارښوونې سره سم یو نوښتگر شکل جوړ کړي او د سریښو په واسطه دې پر بل کاغذ سریښ کړي.



لومړی انځور

## کورنۍ دنده



له سیمه ییزو توکو څخه یو نوښتگر شکل جوړ او بیا یې رنگ کړئ.

لوست ۲۵

# د کور د لوښو رسمول

**موخه**: په نریو خطونو سره د کور د لوښو او لوازمو له رسمولو او پرداز سره د زده کوونکو بلدتیا.

**پوښتنې**: • کله مو دکور لوښي پر پنسل رسم کړي دي؟
• په لاندې انځورونو کې څه شی وینئ؟



دویم انځور



**فعالیت**

لاندې انځورونه  ترکیب او د پنسل په واسطه یې په نریو خطونو پړاو پر پړاو رسم کړئ، وروسته یې پر پنسل پرداز کړئ.



لومړی انځور

**کورنۍ دنده**



زده کوونکي دې پر پنسل د کور له لوښو څخه یو لوښی رسم او ټولګي ته دې راوړي.



لوست ۳۶

# د کور د لوښو رنګول

**موخه**
زده کوونکي به د کور د لوښو له رنګولو سره بلدتیا پیدا کړي.

**پوښتنې:** • لاندې لوښي په کوم ځای کې جوړېږي؟
• دا لوښي کوم رنګونه لري؟



دویم انځور



**فعالیت**

زده کوونکي دې له پنسلي سکيچ وروسته لاندې انځور رنګ کړي، که په درسي ساعت کې بشپړ نشو، بيا دې په کور کې بشپړ کړي.



لومړی انځور

## کورنۍ دنده



زده کوونکي دې د کتاب له مخې يو انځور رسم او ټولګي ته دې راوړي.



## لوست ۳۷

# د تاریخي اثارو رسمول

**موخه**: د تاریخي آثارو او ودانیو د رسمولو له طریقې سره د زده کوونکو بلدتیا.

**پوښتنه:** کله مو د هیواد تاریخي ودانۍ او آثار لیدلي او رسم کړي دي؟



دویم انځور



**فعالیت**

زده کوونکي دې لومړی د تختې او کتاب له مخې شکل د پنسل پر نریو خطونو رسم او بیا دې پرداز کړي.



لومړی انځور

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د پورتني تاریخي څلي په اړوند له مور او پلار څخه پوښتنه وکړي، وروسته دې رسم کړي.



## لوست ۲۸ د تاریخي ودانیو رنګول

**موخه**: زده کوونکي به د پنسل په نریو خطونو د تاریخي ودانیو له رنګولو سره بلدتیا پیدا کړي.

**پوښتنه:** کله مو د هیواد کومه تاریخي ودانۍ رسم کړې ده؟





**فعالیت**

زده کوونکي دې د ښوونکي له لارښوونې سره سم لومړی لاندې شکل د پنسل پر نریو خطونو رسم، بیا دې رنګ کړي.



لومړی انځور

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې له خپلې خوښې سره سم یوه تاریخي ودانۍ پر پنسل رسم او بیا دې پرداز کړي.



لوست ۲۹

# لاسي کار جوړول

**موخه**: له ساده سیمه ییزو توکو څخه د تاریخي اثارو له جوړولو سره د زده کوونکو بلدتیا.

**پوښتنې**: • تاسې ویلای شئ چې تاریخي ودانۍ له کومو موادو جوړې شوې دي؟
• کله مو له ساده سیمه ییزو موادو څخه د تاریخي ودانیو لاسي کار جوړ کړی دی؟



دویم انځور



**فعالیت:** زده کوونکي دې پر څو ډلو وویشل شي، هره ډله دې د لاندې انځور په اړه له خپلې خوښې سره سم د لاسي کار جوړولو په اړوند فکر وکړي، هره ډله دې یو لاسي کار جوړ او د ننداري لپاره دې ټولګي ته راوړي.



لومړی انځور

## کورنۍ دنده

زده کوونکي دې د محیطي ساده موادو څخه لاسي کار جوړ او په بله ورځ دې یې ټولګي ته راوړئ.



لوست ۳۰

# د تاریخي آثارو رنګول

**موخه**

زده کوونکي به د منارونو په رسمولو او رنګولو وپوهیږي.

**پوښتنې:** • ویلای شئ چې په منارونو کې له کومو رنګونو ګټه اخیستل شوې ده؟
• په لاندې انځور کې څه شی ګورئ؟



دریم انځور



**فعالیت:** زده کوونکي دې په څو ډلو وويشل شي، هره ډله دې لاندې انځور ته په پاملرنې يو تاريخي منار سکيچ او بيادې رنګ کړي. هره ډله دې خپل کار، بلې ډلې ته ور وښيي، بيا دې په ټولګي کې ننداري ته وړاندې کړي.



لومړی انځور



دويم انځور

## کورنۍ دنده

د کتاب له مخې يو تاريخي منار پر پنسل رسم او بيا يې ټولګي ته راوړئ.




## لوست ۱

# (۱ او ۲) مخونه

د تدریس وخت (دوه درسي ساعتونه) | لومړی ساعت

| د لوست عنوان | د منې او ناک رسم | |
| --- | --- | --- |
| عمومي موخې | پرپنسل باندې د منې او ناک د رسمولو له طریقې سره د زده کوونکو بلدتیا | |
| د زده کړې موخې<br>- پوهنیزې<br>- مهارتي<br>- ذهنیتي | - زده کوونکي به د منې او ناک له رسمولو سره بلد شي.<br>- زد کوونکي به د منې او ناک له رسمولو سره مینه پیدا کړي. | |
| د تدریس طریقه | ډله‌ییز او ځانګړي فعالیتونه، پوښتنې او ځوابونه، عملي کار او تمرین | |
| د تدریس وسیلې | کتاب، کتابچه،پنسل، پنسل پاک، تباشیر، تخته پاک. | |
| ارزونه | د خپل ډاډ د ترلاسه کولو لپاره له زده کوونکو پوښتنې کوي. | |
| لومړني فعالیتونه | سلام او د یو بل له حال شخه ځان خبرول، حاضري اخیستل، د ټولګي تنظیم، د کورنی دندې کتل، د نوي کال مبارکي او د تېر کال له کتاب سره اړیکه. | ۵ دقیقې |
| | انګیزوي پوښتنې<br>تر اوسه مو کومه میوه د پنسل په واسطه رسم کړې ده؟ | ۵ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | وخت |
|---|---|
| د لوست په اړوند زده کوونکو ته لارښوونې وکړئ.<br>• منه او ناک پر تختې رسم، بیا یې د پړاوونو په باب زده کوونکو ته معلومات ورکړئ.<br>• د منې او ناک رسمولو د وروستي پړاو په اړوند زده کوونکو ته معلومات ورکړئ.<br>• د زده کوونکو د کارونو ارزونه وکړئ او بشپړ شوي کارونه یې د هڅونې لپاره په مناسب ځای کې خوندي کړئ. | وخت<br>۳۵ دقیقې |

**کورنۍ دنده**

د کتاب له مخې د منې او ناک انځورونه پړاو پر پړاو په پنسل رسم او ټولګي ته یې راوړئ.

**اضافي معلومات**

ښاغلی ښوونکی د منې او ناک د رسمولو په اړوند زده کوونکو ته معلومات ورکړئ، هغوی د پوښتنو ځوابولو ته تیار کړئ، وروسته له پوښتنو سم ځوابونه ورکړئ، له خپلې خوښې سره سم د منې او ناک شکلونه پر پنسل رسم کړئ، د کار په لړ کې هغوی ته لارښوونه وکړئ، د داخلي او خارجي خطونو د رسمولو پر وخت یې له نریو پیل بیایې د پنډو خواته رسم کړئ. د منې او ناک د ساده رسمولو لپاره لومړی هغه په یوه چوکاټ کې په ساده خطونو پر تختې رسم کړئ، وروسته کولای شئ چې د منې او ناک شکلونو پرداز له ضعیف څخه د قوي او له روښانه پلو څخه د تیارې خواته وروښیئ چې زده کوونکي وکولای شي ستاسو له لارښوونې سره سم هغه په کتابچو کې رسم کړي.

## ۵ لوست

# (۹ او ۱۰) مخونه

**د تدریس وخت (دوه درسي ساعتونه)** **لومړی ساعت**

| | | |
|---|---|---|
| د لوست عنوان | د سبو رنگول | |
| عمومي موخې | د سبو له رسمولو او رنگولو سره د زده کوونکو بلدتیا. | |
| د زده کړې موخې<br>- پوهنیزې<br>- مهارتي<br>- ذهنیتي | - زده کوونکي به د سبو رسمولو او رنگولو لارې چارې زده کړي.<br>- زده کوونکي به ساېه رسم او رنگ کړای شي.<br>- زده کوونکي به د سبو له رسمولو او رنگولو سره مینه پیدا کړي | |
| د تدریس طریقه | ډله‌ییز او یو کسیز فعالیتونه، پوښتنې او ځوابونه، عملي کار او تمرین | |
| د تدریس وسیلې | کتاب، کتابچه، پنسل، پنسل پاک، تباشیر او تخته پاک. | |
| ارزونه | ښوونکی د ډلې تر لاسه کولو په موخه له زده کوونکو پوښتنې کوي. | |
| لومړني فعالیتونه | سلام، احوال پوښتنه، د ټولگي تنظیم، د حاضرۍ اخیستل، د تېر لوست یادونه اوله نوي لوست سره ارتباط ورکول. | ۵ دقیقې |
| | انگیزوي پوښتنې<br>کله مو ساېه رسم او رنگ کړي دي؟ | ۵ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | وخت<br>۳۵ دقیقې |
| --- | --- |
| • زده کوونکو ته د لوست په اړه معلومات ورکړئ.<br>• د کتاب له مخې پر تختې د سبو رسمول زده کوونکو ته ور وښيئ.<br>• زده کوونکوته معلومات ورکړئ.<br>• د زده کوونکو پوښتنو ته ځوابونه ووایئ.<br>• کارونه يې اصلاح او و ارزوئ. | |

**کورنۍ دنده**

دکتاب د انځور رسم ته پاملرنه وکړئ، وروسته يې رسم او رنګ کړئ؟

**اضافي معلومات**

ښاغلی ښوونکی دې د خامو او پخو سبو خوړلو او کارونې په اړه زده کوونکو ته معلومات ورکړي. وروسته دې د سبو انځورونه پر تختې بېل بېل رسم کړي. بیا دې زده کوونکي پر څو ډلو وویشي. هره ډله دې انځور او فعالیت ته په پاملرنې سره پر هغه کار وکړي، یوه ډله دې خپل کارونه نورو ډلو ته ورکړي.

ښوونکی دې د زده کوونکو څارنه وکړي، هغوی ته دې لارښوونه وکړي چې وکولای شي د سبو شکلونه پر پنسل رسم کړي. له بشپړېدو وروسته دې د ترکیب په اړوند ور سره مرسته وکړي، و دې ګوري چې تر کومې اندازې هغوی په فکر کولو او د مفکورې په رامنځ ته کولو کې ورته والی لري.

د مثال په توګه آیا هغوی د رنګونو په اړوند معلومات ورکولای شي؟

ایا د ستونزو په هوارولو کې يو له بل سره مشوره کوي؟

لوست ۱۰

# (۱۹ او ۲۰) مخونه

**د تدریس وخت (دوه درسي ساعتونه)** **لومړی ساعت**

| د لوست عنوان | د آس د پښو رسمول | |
|---|---|---|
| عمومي موخې | زده کوونکي به له بېلا بېلو زاویو څخه د آس د پښو په رسمولو وپوهیږي. | |
| - د زده کړې موخې<br>- پوهنیزې<br>- مهارتي<br>- ذهنیتي | - زده کوونکي به له بېلا بېلو زاویو څخه د آس د پښو په رسمولو وپوهیږي.<br>- زده کوونکي به د آس د پښو حرکت په سم ډول رسم کړای شي.<br>- زده کوونکي به له بېلا بېلو زاویو څخه د آس د پښو له رسمولو سره مینه پیدا کړي. | |
| د تدریس طریقه | ډله‌ییز او ځانګړي فعالیتونه، پوښتنې او ځوابونه، عملی کار او تمرین | |
| د تدریس وسیلې | د هنرکتاب، کتابچه، پنسل، پنسل پاک، تباشیر، تخته پاک، پنسل تراش | |
| ارزونه | ښوونکی د ډاډ ترلاسه کولو په موخه له زده کوونکو پوښتنې کوي. | |
| لومړني فعالیتونه | سلام، احوال پوښتنه، د ټولګي تنظیم، دحاضرۍ اخیستل، د کورنۍ دندې کتل، تېر لوست ته په کتنې په نوي لوست پیل کوي. | ۵ دقیقې |
| | انګیزوي پوښتنې<br>کله مو د آس پښې له نژدې لیدلې او رسم کړې دي؟ | ۵ دقیقې |

| د ښوونکي فعالیتونه | وخت |
| --- | --- |
| • د لوست په اړوند زده کوونکو ته معلومات ورکړئ.<br>• د کتاب له مخې د آس پښې پر تختې رسم کړئ.<br>• د زده کوونکو پوښتنو ته پاملرنه او سم ځواب ورکړئ.<br>• زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د درسي کتابونو له مخې د آس د پښو حرکتونه رسم کړي.<br>• کارونه یې و ارزوئ. | ۳۵ دقیقې |

**کورنۍ دنده**

د کتا ب له مخې دآس د پښو حرکت په ژورې پاملرنې سره په کتابچو کې رسم کړئ.

**اضافي معلومات**

د رسامۍ د هنر په زده کړه کې ګټورې لارې او طریقې:

الف د درناوي د فضا رامنځ ته کول، په ټولګي کې د صداقت، صمیمیت رامنځ ته کول.

۱. هر سړی باید احساس کړي چې د خپل ټولګي یو مهم غړی دی.
۲. د زده کوونکو پر ځان د باور پیدا کول اړین دي.
۳. د ستونزو په حل کې زده کوونکوته نوبت ور کول.
٤. د زده کوونکو اختلافاتو ته پاملرنه.
۵. د متقابلې همکارۍ د روحیې رامنځ ته کول.
٦. د زده کوونکو په هر نوښتګر کار کې یوه ښېګڼه شته، له دې امله باید د هیڅا کار ته کم و نه کتل شي.
۷. د زده کوونکو د نوښتګرو کارونو د ستاینې په موخه هغه نندارې ته وړاندې کول ډېر هڅوونکي دي.
۸. هڅه دې وشي چې زده کوونکو ته د دوی له عمر سره سمې دندې وسپارل شي.
۹. زده کوونکي دې د رسامۍ لپاره وهڅول شي، نه چې اړ شي.
۱۰. هیڅکله هم د یوه زده کوونکي کار بل ته د سیالۍ په توګه مه وړاندې کوئ.
۱۱. له یوه زده کوونکي سره د بل زده کوونکي کار مقایسه کول ښه نه دی.

**ښاغلی ښوونکی، په دې کتاب کې د نورو لوستونو لپاره د تدریس د لارښود له لیکلو څخه ډډه شوې ده. کولای شئ له دې لارښود څخه د ټولو لوستونو په تدریس کې ګټه واخلئ.**